# شریعت
ورځپاڼه
د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦۹۸ ګڼه / سه شنبه ۰٤ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۱٤مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۰٤مارچ ۲۰۲۵ میلادي





## تهران کې افغان سفیر له خپل هندي سیال سره وکتل

په تهران کې د اسلامي امارت سفارت سرپرست مولوي فضل محمد حقاني په دې هېواد کې له خپل هندي سیال رودرا ګاڼوراو شرست سره کتلي دي.په تهران کې د افغانستان سفارت ویلي، چې په دې غونډه کې دواړو لوریو د افغانستان او هند ترمنځ د دوه اړخیزو همکاریو په پراختیا ټینګار کړی دی.یاده دې شي، چې د دې غونډې په ترڅ کې د چابهار بندر له لارې د صادراتو او وارداتو د لا پراختیا پر اړتیا هم خبرې شوې دي.دا په داسې حال کې ده، په تهران کې د افغانستان سفیر پرون له دې وړاندې د ایران د بهرنیو چارو وزارت د جنوبي اسیا له رییس سره هم کتلي دي.

## په ۷ ولایتونو کې له ۳۰ زیات نوي کتابتونونه جوړ شوي



کتابتونونه د علم او مطالعې د ودې اساسي مرکزونه دي، چې د لوستونکو، په ځانګړې توګه د زده‌کوونکو، محصلینو او د کتاب مینه‌والو لپاره معلوماتو ته د لاسرسي اسانتیاوې برابروي. سږکال په ۷ ولایتونو کې له ۳۰ زیات نوي کتابتونونه فعال شوي، چې موخه یې د مطالعې کلتور ته وده ورکول او خلکو ته تعلیمي سرچینو برابرول ښودل شوي دي.د دا ډول کتابتونونو فعالېدل د زده‌کړو د ملاتړ، د فرهنګي فرصتونو د پراخېدو، تعلیمي کچې لوړېدو او د عامه پوهاوي زیاتولي لپاره مهم دي.د اطلاعاتو او کلتور وزارت ویاند خبیب غفران امارتي ورځپاڼو ته په لیږلي ۳مخ

## د تورخم له بندېدو راهیسې سوداګرو ۱۰ میلیونه ډالره زیان ګاللی



د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې مسئولین وایي چې له تېرو نهو ورځو راهیسې د تورخم دروازې په تړل کېدو سره د افغانستان او پاکستان د خصوصي برخې سوداګرو ته ۱۰ میلیونه ډالره زیان رسېدلی دی. د دغې خونې د مشرتابه پلاوي غړي خان جان الکوزي ویلي، چې تراوسه دواړو خواوو ته نږدې ۱۰ میلیونه ډالر زیان رسېدلی دی. نوموړی وایي، که دا وضعیت دوام وکړي، د دواړو هېوادونو ترمنځ سوداګري به صفر شي. د ننګرهار د سوداګرۍ خونې مسئولین بیا وایي، د افغانستان د تجارتي موټرو په درول کېدو سره، د تازه مېوو او سبزیو لویه ۳مخ

## د تهران او کابل ترمنځ پر دوه اړخیزو اړیکو خبرې وشوې


په تهران کې د افغانستان اسلامي امارت د سفارت سرپرست مولوي فضل محمد حقاني او ورسره مل پلاوي د ایران د بهرنیو چارو

وزارت د جنوبي اسیا له رییس محمدرضا بهرامي سره کتلي دي.یاد سفارت ویلي، چې په دې غونډه کې دواړو خواوو د دوه اړخیزو اړیکو د وروستیو پرمختګونو، په ایران کې د مېشتو افغان کډوالو ستونزو او د ډیپلوماتیکو او اقتصادي اړیکو د پیاوړتیا په اړه خبرې کړې دي.په ایران کې د افغانستان سفارت د خبرپاڼې له مخې، د دې غونډې په ترڅ کې د ګډو همکاریو د بهیر پر چټکتیا هم ۳مخ

## توکیو له افغانستان سره ۷ میلیونه ډالره مرسته وکړه



جاپان د خوړو نړیوال پرګرام (ډبلیو،ایف،پي) له لارې افغانستان ته ۷ میلیونه ډالر مرسته ورکړې ده.یاد پروګرام په خپله ایکس پاڼه لیکلي، چې دا مالي مرسته به د دې پروګرام له لوري په بېړنیو خوراکي توکو، د روغتیا او د زده‌کړو په برخو کې ولګول شي.یاد پروګرام د جاپان دغه مرستې په مهم وخت کې بللې او زیاته کړې یې ده، چې د ژمي په سختو ورځو کې به د افغانستان په اقتصادي برخه کې ډېره همکاري وکړي.

## سرمقاله

## انتظار از بیگانگان سبب تضعیف روحیه ملی می گردد

مشاجره لفظی سران امریکا واوکراین که یقیناً خلاف عرف دیپلوماتیک بود، واکنش های متفاوتی را درسطح جهان میان سیاسیون وسران کشور ها برانگیخته واین را بر ملا ساخته که دنیای تک قطبی هنوز دارد بر استعمار خود می افزاید.

مشاجره لفظی میان ترامپ وهمتای آن نه تنها جمهوری خواهان را دچار اختلاف کرده ،بلکه سران کشور های اروپایی را نیز بر حمایت بیشتر از اوکراین وا داشته است. شماری از کشور های جهان ترامپ را متهم به معامله گری با روسیه می کنندو این را نیز خاطرنشان می سازند که برخورد ترامپ خلاف عرف دیپلوماتیک بوده است، اما برخی دیگر از سیاستمداران جهان، زلنسکی را سبب ادامه جنگ باروسیه ودیکتاتور قرن خوانده اند که این تنش واختلافات به ویژه میان حامیان مالی، نظامی وسیاسی جنگ اوکراین ، خود شکست این کشور و ضعف ستراتیژیست های حامیان بین المللی اش را به نمایش می گذارد واین را به اثبات می رساند که بزرگترین حامی اوکراین بیش از هر مسئله دیگر در پی منافع خود بوده و دفاع از حقوق بشر ومقابله با روسیه یک حرف میان تهی وشعاری بیش نبوده است. مشاجره لفظی میان رئیسسان جمهور امریکا واوکراین در حالی رسانه یی شد که پیش از این، رئیس جمهور امریکا تأکید کرده بود : پول‌های را که در جنگ به اوکراین کمک کرده ایم درعوض آن در معادن نادر این کشور ما را سهم دهند ودر پی این اظهارات امریکا هیئتی را نیز به کیف فرستاد که سرانجام سبب دعوت زلنسکی به امریکا وتنش بی سابقه میان سران اوکراین وامریکا شد، امااین تکبر وخود ارادیت سران امریکا درقضیه اوکراین ودیگر کشور ها، انسان را به یادضرب المثلی مشهوری (آنانی که نان می دهند فرمان می دهند) می اندازد. هرچند تاراج معادن و ادعای سهم از سوی امریکا موضوع تازه نیست و امریکا و شرکایش در بیست سال تجاوز شان بر افغانستان نیز معادن را تا حدی که توان شان رسید ، تاراج وبه یغما بردند، اما تاکید سریع وبی پرده رئیس جمهور امریکا بر سهمیه گرفتن از معادن اوکراین، لگام گسیختگی، لجاجت وتکبر این انسان از خود راضی را نشان می دهد، زیرا این نخستین اظهارات غیر مسئولانه ترامپ نیست، بلکه چند پیش در یک کنفرانس خبری از خرید غزه وکوچانیدن اجباری ساکنان آن به مصر، لبنان ودیگر کشورها ، همچنان واپس گیری سلاح های بجامانده در افغانستان و... ص ۳

## کشف‌وضبط بیش از ۵۰ هزار کیلوگرام اموال قاچاق در دو هفته گذشته



وزارت مالیه می گوید، موظفین بخش‌های نظارت و بررسی معینیت گمرکات کشور بیش از ۵۰ هزار کیلوگرام اموال قاچاقچی را در بنادر کشور کشف‌وضبط کرده‌اند.به گفته وزارت مالیه، اموال قاچاقچی یادشده طی دو هفته گذشته از بنادر ولایت‌های نیمروز، کندهار، فراه، ننگرهار، هرات و هلمند بدست کارمندان نظارتی معینیت گمرکات کشور افتاده است.اموال بدست آمده شامل مواد خوراکی از جمله شیرینی، ادویه‌جات انسانی، حیوانی و نباتی، شوینده‌باب، میوه‌جات، لوازم بهداشتی و دیگر اقلام شامل است.در خبرنامه آمده که قرار بود این اموال کشف‌وضبط شده از سوی قاچاقبران بدون محصول گمرکی و به شکل قاچاق وارد کشور شود. وزارت مالیه افزوده ص۳

## پروژه احاطه میدان هوایی ترینکوت به بهره‌برداری سپرده شد



وزارت ترانسپورت و هوانوردی ملکی می گوید، کار احاطه میدان هوایی شهر ترینکوت مرکز ولایت ارزگان به ارزش ۹ میلیون افغانی تکمیل و به بهره‌برداری سپرده شده است.به گفته وزارت ترانسپورت و هوانوردی ملکی، احاطه میدان هوایی ترینکوت به طول ۴۰۰۰ متر و ارتفاع ۳ متر صورت گرفته است. ص۳

## صدها موتر در هلمند از وجود شیشه‌های سیاه پاکسازی گردید

مقام‌های امنیتی ولایت هلمند تایید کرده‌اند که در نتیجه تلاش نیروهای پولیس در این ولایت صدها عراده موتر از وجود شیشه‌های سیاه پاکسازی شده است.بر بنیاد خبرنامه، ملا عبدالحسیب جاوید، مدیر دایاک، قوماندانی امنیه ولایت هلمند گفته که این تعداد موترها در ایست‌های تلاشی پولیس در یک هفته گذشته از وجود شیشه‌های سیاه پاک‌سازی شده‌اند.آقای جاوید گفته که در این ایست علاوه از شیشه‌های سیاه، از حمل سلاح‌های خودسر و غیرقانونی نیز جلوگیری شده است.او تاکید کرده که این اقدام در ولسوالی‌های گرشک و واشیر ولایت هلمند راه‌اندازی شده است.به گفته مدیر دایاک قوماندانی امنیه ولایت هلمند ۲۰۰ عراده موتر در جریان یک‌هفته مورد بررسی قرار گرفته و شیشه‌های دودی‌شان پاک‌سازی شده است.

## په ۷ بندرونو کې څه باندې ۵ زره ودانیز توکي تثبیت شوي



د سټنډرډ ملي اداره وایي، چې د هېواد د بندرونو په کنټرولولو سره د ټیټ کیفیته ودانیزو توکو د ننوتلو مخه نیول شوې ده.د یادې ادارې د خبر له مخې، د روان کال د سلواغې په میاشت کې د هېواد د ۷ بندرونو له لارې ۵ زره ۳۷۱ محمولې ودانیز توکي، چې وزن یې (۲۰۳۸۸٦.٦۳۷) ټنه کېږي تثبیت او کیفیت شوي دي. په دې لړ کې ۵۱ زره ۵۱۲ متراژه په وزن پي‌وي‌سي، کاشي ۳مخ

# شرعي سیاست نبوي سنت دی

**مفتي محب الله حقاني**

بده خبره ده چې څوک دا وايي او باور لري چې سياست له دين سره تړاو نه لري. دا مفکوره د غرب مستشرقينو راوړې، ترويج کړې، او آن تر دې چې زموږ د ځينو عامو او ناخبرو مسلمانانو ذهنونو ته يې داخل کړې ده. هغوی سياست دروغ، جدل، چل او فريب ګڼي او فکر کوي چې دا يوازې يوه تفريحي لوبه ده، چې سياستوال په کې يو له بله سره سيالي کوي—العياذ بالله!

مؤمن ملته! بايد پوه شئ، لکه څنګه چې درس و تدريس، دعوت و تبليغ، د دين د ننګ پر بنسټ قتال او تصوف د اسلام د استحکام او پايښت لپاره اساسي بنسټونه دي، همداسې مشروع سياست هم د دين لپاره يو مهم اصل او بنسټ دی.

سياست د دين نه جلا کېدونکی جزء دی. امام بخاري رحمه الله د سياست په اړه په خپل «صحيح» کې يو مستند حديث رانقل کړی:

(كانت بنو اِسرائيل تسوسهم الأنبياء)

ژباړه: د بني اسرائيلو پيغمبرانو به سياست کاوه.

په دې حديث کې د بني اسرائيلو پيغمبرانو ته د سياست نسبت شوی، يعني هغوی د دين له مخې سياست کاوه. دوی د خپلو شرائعو د ښه تنفيذ او استحکام لپاره له سياست څخه کار اخيست. له همدې امله، سياست د دين د خپرولو او پياوړتيا لپاره مهم رول لوبوي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم د بني اسرائيلو د پيغمبرانو دغه تګلاره تائيد کړې او سياست يې د پيغمبرانو يوه ديني لاره بللې ده، نه يوه بې‌ارزښته لوبه، نو شرعي سياست، چې د دين د استحکام او بقاء لپاره دی، د اسلام يوه لازمي برخه ده.

سياست ته لوبه، دروغ، جدل، چل او فريب ويل په خپله يو فريب دی، چې غربيانو د مسلمانانو د کمزوري کولو لپاره جوړ کړی. دا مهم نبوي سنت له مسلمانانو څخه پټ ساتي، ترڅو اسلامي امت له اقتدار څخه محروم شي.

علما کرامو ته لازمه ده چې د سياست حقيقت خلکو ته روښانه کړي او سياست د دين له بنسټونو څخه يو قاطع اصل معرفي کړي. دوی بايد د سياست له هغه نبوي منهج څخه کار واخلي، کوم چې پيغمبرانو عليهم‌السلام غوره کړی و، ځکه چې د دين د تلپاتې کولو لپاره د سياست غوره کول يوه مهمه ستراتيژي ده.

نو علما کرام بايد د دين د استحکام لپاره د نورو پلانونو ترڅنګ، له دې نبوي او ميراثي سياست څخه هم کار واخلي، ترڅو اسلامي نظام ته تلپاتې بقاء او استحکام ورکړي.

# روژه د برکت او رحمتونو میاشت

**مولوي ضياء الحق حسان -دويمه برخه**

۳- د رمضان مياشت کې د صدقې فضيلت:

په رمضان مياشت کې صدقه له نورو مياشتو غوره ده، ابن عباس رضی الله عنه وايي: نبي کريم صلی الله عليه وسلم جواد د خلکو و په خير کې، هغه مهال به يې جوادتوب ډېر زيات شو چې د روژې مياشت به وه او حضرت جبرئيل عليه السلام به ورسره يو ځای شو، تر دې چې جبرئيل عليه السلام به هره شپه رمضان کې ورسره ملاقات کولو او نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته به يې قرآن کريم دور کولو، کله به چې جبرئيل عليه السلام ورسره يو ځای شو نبي کريم صلی الله عليه وسلم به له باد څخه هم زيات جواد و.

٤-ليلة‌القدر:

الله تعالی روژې ته د ليلة القدر له امله نور هم عزت ورکړی، نبي کريم صلی عليه وسلم فرمايي:

چاچې د ليلة القدر قيام وکړ ايمان يې په الله تعالی و او نيت يې د ثواب و مخکيني ګناهونه به الله تعالی ورته وبښي.

٥_صلاة التراويح:

مسلمانانو اجماع کړې په سنت کېدلو د قيام رمضان د شپو.

امام نووي رحمه الله فرمايي: مراد له قيام د رمضان د تراويحو لمونځ دی، په فضيلت کې يې دغه حديث راغلی: څوک چې قيام د رمضان وکړي ايمان يې په الله تعالی وي او نيت د ثواب لري الله تعالی به مخکيني ګناهونه ورته وبښي.

٦-اعتکاف:

فقهاوو اعتکاف د رمضان د لسو وروستيو ورځو سنت مؤکد بللی، ځکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم ورباندې مواظبت او هميشتوب کړی ام المؤمنين عايشة رضی الله عنها وايي: نبي کريم صلی الله عليه وسلم به د رمضان په لسو وروستيو شپو کې اعتکاف کولو تر دې چې وفات شو، له دې وروسته به يې بيبيانو اعتکاف کولو.

الموسوعة الفقهيه الکويتيه جلد۲۳

نور بيا...

# روژه انسان ته د صبر، استقامت او روحاني پیاوړتیا درس ورکوي

**محمد قاسم عزام**

روژه يوه الهي روزنه ده چې انسان ته د صبر، زغم، استقامت او ثبات درس ورکوي، ترڅو د ژوند له ټولو ستونزو سره په حوصله مقابله وکړي. د روژې ټول عبادات له صبر سره تړلي دي. کله چې يو مومن د سهار له اذان څخه د ماښام تر اذانه پورې د لوږې، تندې او شهوتونو څخه ځان ساتي، نو دا يو عملي تمرين دی چې د ژوند په نورو برخو کې هم له صبر او زغم څخه کار واخلي. د صبر درې درجې دي: د طاعت پر ادا کولو صبر، د ګناهونو نه کولو صبر او د ازموينو او ستونزو پر وړاندې صبر. روژه دا درې واړه صبرونه يوځای کوي. انسان د روژې د حق د ادا کولو لپاره عبادت کوي، له ګناهونو څخه ځان ساتي او د لوږې او تندې په زغملو سره د الله تعالی رضا ته تسليمېږي.

د نبي کريم ﷺ او صحابه کرامو ژوند د صبر له روښانه بېلګو څخه ډک دی. رسول الله ﷺ به د رمضان مبارکه مياشت د عبادت، صبر، زغم او د نفس د کنټرول له ټولو لوړ حد ته رسول. روژه د هغه ﷺ لپاره يوازې د خوراک او څښاک نه پرېښودل نه وو، بلکې د روح، اخلاقو، عبادت او د الله جل جلاله سره د نږديوالي يوه ځانګړې دوره وه. کله چې به د مکې کفارو هغه ته تکليف ورکاوه، ده ﷺ به صبر کاوه، بد يې نه ورته ويل، بلکې د هغوی د هدايت لپاره يې دعاګانې کولې. د شعب ابي طالب د سختو کلونو پر مهال، چې په مسلمانانو باندې خوراک، څښاک او حتی د خپلو خپلوانو سره اړيکې بندې شوې، رسول الله ﷺ او صحابه کرامو صبر وکړ، نه يې شکايت وکړ او نه يې خپله عقيده سسته کړه. دا درې کاله چې مسلمانان له هر ډول بشري اسانتياو بې برخې وو، د روژې له ټولو ستر تمرين وو، ځکه هغوی نه يوازې له خوراک، څښاک او د راحت له اسانتياوو محروم وو، بلکې د هر اړخيز محاصره له امله له ټولنيز ژوند هم ايستل شوي وو،خو سره له دې، د رسول الله ﷺ صبر داسې و چې حتی د سختو شپو پر مهال يې د خپل اُمت او د کفارو لپاره د هدايت دعاګانې کولې.

کله چې د احد غزا وشوه، رسول الله ﷺ ته داسې زخمونه ورسېدل چې مبارک مخ يې زخمي شو، غاښ يې مات شو او د جګړې سخت فشار پرې راغی، مګر د صبر، حلم او استقامت يوه ستره بېلګه يې وړاندې کړه. نه يې د قريشو لپاره بد دعا وکړه، نه يې خپل عزم کمزوری کړ، بلکې د الله جل جلاله په لور يې لاسونه پورته کړل او ويې ويل: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِقَوْمِي فَإِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ" (ای الله! زما قوم وبښه، ځکه هغوی نه پوهېږي). دا صبر يوازې د بدن زغم نه و، بلکې د زړه زغم و، د اخلاقو زغم و او د رحمت ستر مثال و.

د طائف د سفر سختې شېبې د رسول الله ﷺ د صبر يو بل غوره مثال دی. کله چې نبي کريم ﷺ طائف ته ولاړ، د هلته خلکو د اسلام پيغام رد کړ، سپکاوی يې ورته وکړ او ماشومان يې راټول کړل چې هغه ﷺ ته تيږې ووروي. دومره سخت زخمي شو چې له بدن مبارک يې وينې بهېدې، مګر کله چې د آسمان له لورې د ملائکو مرسته راغله او ورته وويل شول چې که امر وکړې، دا قوم به تباه شي، نبي کريم ﷺ وويل: "بَلْ أَرْجُو أَنْ يُخْرِجَ اللَّهُ مِنْ أَصْلَابِهِمْ مَنْ يَعْبُدُهُ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا" (زه هيله لرم چې الله به له دوی داسې نسل پيدا کړي چې يوازې هغه عبادت وکړي او هېڅ شی به ورسره شريک نه کړي). دا د صبر لوړترين حد و، چې له روژې سره يې ژور تړاو لري، ځکه روژه د نفس د تزکيې لپاره تمرين دی او نبي کريم ﷺ يې عملي نمونه وه.د هجرت مهال د رسول الله ﷺ صبر ته يو بل ستر امتحان و. کله چې هغه ﷺ او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د مکې نه ووتل، د سرې سر قيمت يې ټاکل شوی و، دښمنان يې پسې ګرځېدل، مګر صبر يې وکړ، د الله تعالی په نصرت يې باور درلود او حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته يې د زړه ډاډ ورکړ او ويې ويل: "لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا" (مه خفه کېږه، الله زموږ سره دی). دا هغه صبر و چې نه يوازې د هجرت سفر ته قوت ورکوي، بلکې د روژې فلسفه هم روښانوي - يعنې د الله تعالی رضا ته ځان سپارل، مصيبتونه زغمل او د پايلې د الله تعالی سره تړل.که د صحابه کرامو ژوند ته وکتل شي، نو هغوی به د روژې پر مهال د جګړو، سختو حالاتو او د اسلامي دعوت له ستونزو سره سره صبر کاوه. د بدر غزا د رمضان په مياشت کې وشوه، صحابه کرام د روژې په حالت کې وو، د شديدې تندې او لوږې باوجود يې د صبر، استقامت او ايماني قوت داسې مثالونه وړاندې کړل چې د تاريخ زرين بابونه دي. دوی نه يوازې د جګړې ستونزې زغملې، بلکې د نفس، اخلاقو او جذباتو کنټرول يې هم کړی و. حضرت علي رضي الله عنه وايي: "الصبر مطية لا تکبو" (صبر داسې سپرلۍ ده چې هېڅکله به ونه غورځي). دا صبر د صحابه کرامو ژوند ته داسې قوت ورکاوه چې د هرې سختۍ سره يې مقابله کوله او روژه يې د دې صبر د لا قوي کولو وسيله وه.

روژه د صبر، زغم او روحاني استقامت يوه ستره وسيله ده، چې نبي کريم ﷺ او صحابه کرامو يې عملي مثالونه وړاندې کړي. دا صبر يوازې د خوراک او څښاک نه پرېښودل نه دي، بلکې د ژوند د ټولو سختيو پر وړاندې استقامت کول، د اخلاقو زغم، د نفس کنټرول او د الله تعالی رضا ته ځان سپارل دي.

د روژې صبر نه يوازې په عبادت کې څرګندېږي، بلکې د اخلاقو او ټولنيز ژوند په هر اړخ کې يې تاثير ښکاري. کله چې يو مومن روژه نيسي، نو د غوسې، بد اخلاقۍ، دروغو، غيبت او چټي خبرو څخه ځان ساتي، ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي: "که د چا روژه وي، نو بدې خبرې دې نه کوي، جنګ دې نه کوي، که څوک ورسره جګړه کوي يا سپکاوی ورته کوي، نو دې ووايي: زه روژه يم." (بخاري، ۱۹۰۴؛ مسلم، ۱۱۵۱). دا ښوونه انسان ته دا درس ورکوي چې روژه يوازې له خوراک او څښاک څخه ځان ساتل نه دي، بلکې د نفس کنټرول، د اخلاقي قوت لوړول او د ټولنيز تعامل اصلاح هم په کې شامل دي.د روژې صبر انسان ته دا وړتيا ورکوي چې د ټولنې د ناخوالو پر وړاندې قوي او باعزته دريځ ولري. روژه موږ ته دا را زده کوي چې دنيا د سختيو، ازموينو او محروميتونو کور دی، خو صبر بيا هغه زينه ده چې انسان ته د کامرانۍ لاره پرانيزي. امام ابن القيم رحمه الله وايي: "صبر د ايمان نيمه برخه ده، ځکه ايمان دوه برخې لري: يو شکر، او بل صبر." (مدارج السالکين، ج۲، ص ۱۵۶). دا د روژې فلسفه ده چې مومن ته د صبر، قناعت، شکر او توکل درس ورکوي.

محترمو ورونو! روژه يو داسې عمل دی چې د انسان روح صفا کوي، د صبر ملکه ورکوي او د نفس اصلاح ته يې چمتو کوي. دا د الله جل جلاله د نږديوالي ستر فرصت دی. صبر انسان ته دا ځواک ورکوي چې د ژوند په نورو برخو کې هم ثابت قدم پاتې شي، د ستونزو پر وړاندې ټينګ ودرېږي او د ديني او دنيوي بريا لپاره پياوړی شخصيت ولري.



# روژه د مادي او معنوي قوت میاشت ده

**ژباړه او زیادت: مولوي نورالحق مظهري**

لومړی به دا خبره وکړو چې قوت پر دوه قسمه دی: مادي قوت او معنوي قوت، انسان په خپلې بریا کې دواړو قوتونو ته اړتیا لري، البته په یواځې مادي قوت باندې کله کله انسان بریالی کېږي خو لیکن دغه بریا اوږده او مفیده نه وي.

که وګورو په قرآن عظیم الشان کې د دې لپاره ډېرې نمونې ذکر شوي،چې یوه نمونه یې عادیان، ثمودیان او فرعونیان دي.

عادیان او ثمودیان په خپل وخت کې په مادي لحاظ ډېر قوي وه له همدې امله یې تکبر او غرور کاوه، د الله له پیغمبرانو سره یې جګړه او مخالفت کاوه او په مځکه کې یې فسادونه خپرول، نو ځکه یې الله پاک ټول قدرتونه ختم کړه او سخت عذابونه یې ورباندې راوستل.

او دا د هغو امتونو څو بېلګې،چې مادي قوت یې بیخي ډېر درلودی خو د معنوي او روحي قوت څخه خالي وه.

او د شرایطو او عادت پر بنیاد یواځې معنوي قوت هم د انسان د نصرت او کامیابۍ لپاره کافي نه دی لکه شاعر چې وایي:

لا خيرَ في حقٍّ إذا لم تَحْمِه ... حَلَقُ الحديدِ وألسنُ النيران

ژباړه: هېڅ خیر په هغه حق کې نشته چې د وسپنو په کړیو او د اور په لمبو باندې یې ساتنه نه کېږي.

مادي او روحي قوتونه حیثیت د دوو وزرو لري لکه مارغه چې په یوه وزر باندې نه شي الوتلای انسان هم په یوه قوت باندې نه شي بریالی کېدلای بناءً صحیح او شرعي لاره دا ده چې انسان ځانته دواړه قوتونه حاصل کړي او د دنیوي او اخروي دواړو ښېګڼو لپاره هڅه وکړي لکه قرآن چې موږ ته تعلیم را کړی او فرمایي:

وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ.[سورة البقرة ۲۰۱] ژباړه: ځیني د دوی څخه وایي: ای ربه زموږ! موږ ته په دنیا کې هم ښېګڼې راکړه او په آخرت کې هم ښېګڼې راکړه او موږ د اور د عذاب څخه وساته.

نو مسلمان لکه د اخروي ژوند د سمون لپاره چې کوښښ کوي د دنیوي ژوند د سمون لپاره هم باید کوښښ وکړي.

او لکه د اخروي ژوند سمون چې په معنویاتو باندې لاس ته راځي د دنیوي ژوند سمون په مادیاتو باندې لاس ته راځي او مادیات خالص اسباب دي چې پر مټ یې معنویاتو ته سرې رسېدلای شي او چې کله مادیات او معنویات دواړه برابر شي بیا نو هراړخیزه نیکمرغي د انسان په برخه کېږي.

هېره دې نه وي لکه الله پاک چې موږ ته د عقیدې د سموالي او محکموالي سپارښتنه کړې ده د مادي قوت د برابروالي سپارښتنه یې هم کړې ده: او فرمایي ژباړه: تاسو برابر کړئ د دوی لپاره هغه چې ستاسو په طاقت وي د قوت او تړلو څخه د آسانو تر څو تاسو په هغه باندې د الله او د ځان دښمنان و وېروی. [ الانفال ۶۰]

په دې باندې باید موږ ځانونه پوه کړو کوم شی چې د شرعي اصولو څخه ښکاري او په تجربه باندې هم ثابت شوي دا دي چې د معنوي قوت سره چې کله مادي قوت یوځای شي نو پر مطلق مادي قوت باندې بری پیدا کوي.

لکه الله پاک چې فرمایي:كَمْ مِنْ فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ.[ البقرة ۲۴۹]

ژباړه: ډېر ځله داسې پېښېږي چې کوچنۍ ډله دې پر لویې ډلې د الله په اراده کامیابه شي او الله د صبر کوونکو سره دی.

او د دې لپاره د بدر غزوه لویه بېلګه ده چې د مسلمانانو شمېر ۳۰۰ نفره وو خو کفار ۱۰۰۰ نفر وه خو مسلمانان ځکه کامیابه شوه چې د توان سره سم د مادي قوت تر څنګ معنوي قوت هم ورسره وو ځکه مسلمانان په اسلامي سپېڅلي عقیده، نبوي اخلاقو او روحي سکون باندې سمبال وه، مادي قوت یې کڅه هم د کفارو په پرتله لږ وو خو بیا هم تر خپل توان یې د هغه د برابرولو هڅه کړې وه داسې یې نه وه کړي چې بېله کومې امادګۍ او بېله کومې وسلې جنګ ته ووځي.

د همدغو دوو قوتونو مثال الله پاک په قرآن کې موسی علیه السلام راوړی دی:

موسی علیه السلام چې کله د مصر څخه مدین ته را ورسېد په لاره کې یې پر یوه څاه باندې دوې نجونې ولیدلې چې غوښتل یې خپل مالونه اوبه کړي خو د کمزورۍ له کبله یې ژر نه شوې اوبولای موسی علیه السلام د دغو دوو نجونو مالونه د مټ په زور چې مادي زور دی اوبه کړل خو چې کله نجلۍ د خپل پلار په غوښتنه دې کور ته وغوښتې نو په نجلۍ پسې روان شو دا نتیجه د معنوي قوت وه چې په حیاء باندې ورسره روان وو او هېڅ یې ورته نه کتل.

او بل مثال یې الله پاک په امت د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې ویلی لکه چې فرمایي:

مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا.[سورة الفتح ۲۹]

ژباړه: محمد د الله رسول دی او هغه خلک چې د ده سره دې پر کفارو باندې سخت دي او په خپل منځ کې ډېر سره مهربانه دي، ته دوی وینې په داسې حال کې چې رکوع او سجده کوي تر څو د الله مهرباني او خوشحالي لاسته راوړي.

علماو لیکلي: دا چې الله پاک وایي: دوی پر کفارو باندې سخت دي. دا د مادي قوت عنوان دی او دا چې وایي: دوی په خپل منځ کې پر یو بل مهربان دي. دا د معنوي قوت عنوان دی او دا چې الله پاک وایي: ته دوی وینې په داسې حال کې چې رکوع او سجده کوي تر څو د الله مهرباني او خوشحالي لاسته راوړي. دا د مادي او معنوي قوت نتیجه او د اسلامي امت د نیکمرغۍ لپاره هغه اصل دی چې مادي او معنوي قوت سره یوځای کوي.

## په ۷ ولایتونو کې له ۳۰ زیات ...

پیغام کې هلمند، هرات، نورستان، کندهار، بامیان، بدخشان او کابل هغه ولایتونه یاد کړي، چې سږکال یې په کې نوي کتابتونونه جوړ کړي: اوس ولسونه د کتابتونونو د جوړېدو غوښتنه کوي. د بېلګې په توګه، همدا درې اوونۍ مخکې د غزني په مقر ولسوالۍ کې د خلکو د ډېرو غوښتنو وروسته مو یو نوی کتابتون پرانیست، همدا راز سږکال په هرات، هلمند، نورستان، کندهار، بامیان، بدخشان او کابل ولایتونو کې تر ۳۰ زیات دولتي او خصوصي کتابتونونه فعال شوي دي.نوموړی د مطالعي فرهنګ د پراختیا خبر ورکوي: د خلکو مینه له کتابتون، کتاب او مطالعې سره ورځ تر بلې زیاتېږي؛ که الله پاک وغواړي، په راتلونکي کې به دغه بهیر نور هم پراخ او ګړندی شي او د هېواد د هر کلي ځوان به کتابتون ته لاسرسی ولري او کتاب به لولي.ښاغلي غفران دغه برخه کې د یاد وزارت د فعالیتونه په اړه هم زیاتوي چې د هېواد په کچه د کتابونو نندارتونونه، د کتاب لوستلو سیالۍ او سیمینارونه یې ترسره کړي ؛ همدارنګه د هېواد په کچه د کتابتونونو د مدیرانو د وړتیا لوړولو لپاره علمي او روزنیز ورکشاپونه ترسره شوي، تر څو خلکو ته ښه خدمتونه وړاندې کړي.د یادونې ده، چې دغه وزارت له دې وړاندې د یو شمېر کتابونو د پېرولو خبر هم ورکړی و، چې ټولو کتابتونونو ته به وویشل شي.کتابتونونه نه یوازې د زده کړې کچه لوړوي، بلکې د فکر د پراختیا، د نسلونو ترمنځ د پوهې د لېږد او د ټولنیزې ودې لپاره هم اساسي ونډه لري. مطالعه د خلکو د فکري ودې، د علمي پرمختګ او د ټولنې د سوکالۍ لپاره بنسټیز رول لري، چې د یوه پرمختللي او روښانه راتلونکي لپاره حیاتي اهمیت لري. **تاج محمد بهار**

## انتظار از بیگانگان ...

نیز سخن گفته بود، درحالیکه سلاح های بجا مانده در افغانستان سلاح های غنیمت بوده وباید امریکا وشرکایش برای مردم افغانستان غرامت جنگی بپردازند ومردم فلسطین نیز بخاطر بی عدالتی های رژیم صهیونیستی و حفظ غزه بیش از ۴۸ هزار شهید وهزاران مجروح داده اند، تااینکه رژیم صهیونیستی وحامیان بین المللی شان را وادار به آتش بس کردند.بنابرین این موضوع باید به جهانیان واضح گردد که کشور های اسلامی ومسلمانان متجاوز و جنگ افروز نبوده، بلکه این استکبار جهانی است که بخاطر بدست آوردن منافع اقتصادی وژیو پولتیک خود، جنگ های تحمیلی را در جهان شعله ور می سازد تا ماهی مراد را صید کند. بناً جهانیان به ویژه مردم افغانستان بدانند که هیچ کشوری بخاطر دفاع از حقوق بشر و .... برای کشور دیگری کمک نمی کند، بلکه افزایش تنش ها و شعله ور ساختن جنگ های تحمیلی بر کشور های جهان سوم به باور کارشناسان دو دلیل دارد یکی این که سلاح ها و تجهیزات نظامی شان به فروش برسد ودوم از مواد خام آن استفاده بهینه کنند.روی این اساس تکیه بر خارجی ها وکمک از آنان ، یک خیال باطل و به شرک نزدیک شدن است. پس در این صورت باید تنش های داخلی وخارجی کشور های جهان سوم به ویژه آن کشور هایی که تازه از جنگ فارغ شده اند در تفاهم وگفتگوهای سیاسی حل وفصل گردد و بر موضوعات داخلی نیز بجای تکیه به خارجیان وکمک از آنان دریک تفاهم ملی وخودمانی بر مسایل، پرداخته شود ، زیرا تجربه نشان داده که هیچ کشور متجاوز وخارجی بدون منافع خود به یاری دیگر ملت ها نه شتافته اند واین ملت ها اند که کشور خود را با همدلی ، همنوایی وهمگرایی بازسازی وبهسازی کرده وامروز قلعه های از رفاه ، آسایش وخود کفایی را در تمام عرصه ها تجربه می کنند.

## د تورخم له بندېدو ...

برخه خرابه شوې او افغان سوداګرو ته د ورځې لسګونه زره ډالره زیان رسېږي. پاکستان د تېرې اوونۍ له شنبې ورځې راهیسې د سرپرست حکومت لخوا د فرضي کرښې دې غاړې ته د ځینو تاسیساتو جوړولو په غبرګون کې د تورخم دروازه تړلې ده.

## د تهران او کابل ...

ټینګار شوی دی.د یادونې وړ ده، چې افغانستان او ایران نه یوازې ګډه پوله لري؛ بلکې دواړه هېوادونه ته اوږدمهاله تاریخي، کلتوري، اقتصادي او سیاسي اړیکو ځانګړې ارزښت ورکړی دی.

## په ۷ بندرونو کې څه ...

او ایزوګام هم تثبیت او کیفیت شوي دي.یاده دې شي، چې دغه توکي د هېواد له فراه ۷۸ میل، هرات، حیراتان، آقینه، غلام‌خان، تورخم او نیمروز بندرونو له لارې کیفیت شوي دي.

## کشف‌وضبط بیش از ...

که شماری از قاچاقران در پیوند به قاچاق کالاهای یادشده نیز بازداشت شده‌اند.این در حالی است که پیش از این نیز هزاران کیلوگرام اموال قاچاقچی از سوی بخش‌های نظارتی معینیت گمرکات کشور کشف‌وضبط شده است.

## پروژه احاطه ...

در خبرنامه این وزارت آمده که احاطه میدان هوایی شهر ترینکوت در حال حاضر با دیوار سیمی صورت گرفته است.هدف از احاطه کردن میدان هوایی یادشده را وزارت ترانسپورت و هوانوردی ملکی، مصوونیت ساحه عملیاتی عنوان کرده است. گفتنی است که وزارت ترانسپورت تلاش‌ها را جهت بهبود وضعیت میدان‌های هوایی کشور در ولایت‌های مختلف، افزایش داده است.

Shariat
Daily

**Shariat**
**Published by**
**Islamic Emirate of Afghanistan**
**Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies**
0202526340
**Chief Editor : Farooq Ghaljai/** 0778635852
**Email: info@shariatdaily.com**
**WWW.shariatdaily.com** ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Monday 04 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 698


# دیپلومات‌های افغان و ایران بر تسریع همکاری‌های دیپلوماتیک تأکید کردند

سفارت افغانستان مقیم تهران می‌گوید، دیپلومات‌های افغان و ایران بر سرعت بخشیدن همکاری‌های دیپلوماتیک دو جانبه تاکید کرده‌اند.

به گفته سفارت افغانستان مقیم تهران، مولوی فضل محمد حقانی، سرپرست سفارت کشور با محمد رضا بهرامی، مدیر کل آسیای جنوبی وزارت امور خارجه ایران دیدار و گفتگو کرده است.

بربنیاد خبرنامه، در این دیدار در مورد آخرین تحولات در روابط دوجانبه، موضوعات مربوط به مهاجرین افغان و گسترش روابط اقتصادی و دیپلوماتیک میان کابل و تهران گفت‌وگو شده است.

دو طرف تاکید کرده‌اند که برای دستیابی به پیشرفت‌ها در موارد یادشده، سطح همکاری‌ها باید افزایش یابد.

این در حالی است که روابط دیپلوماتیک، اقتصادی و تجاری میان افغانستان و ایران در بیش از سه سال گذشته بیشتر از هرزمانی افزایش یافته است.

## نړۍ ځار

## چین د امریکا پر کرنیزو محصولاتو لوړې مالیې لګوي

ګلوبل ټایمز پرون په یوه راپور کې ویلي، چې چین د امریکا له لوري د ۱۰ سلنه اضافي تعرفو ګواښ ته د ځواب ویلو لپاره د متقابلو اقداماتو پر ارزونه او تنظیم بوخت دی.د چین د دولتي رسنۍ ګلوبل ټایمز د راپور له مخې، دا ګام به د نړۍ د دوو لویو اقتصادونو ترمنځ سوداګریز کړکیچ لا پسې سخت کړي.دا په داسې حال کې ده، چې د امریکا متحده ایالتونو ولسمشر واک ته د رسېدو په لومړیو کې د څو نورو اروپایي هېوادونو په ګډون چین باندې ۱۰ سلنه اضافی تعرفې ولګولې.

## معاون استراتیژیک ریاست جمهوری ایران استعفا داد

مجمد جواد ظریف، معاون استراتیژیک مسعود پزشکیان، رییس جمهور ایران از مقامش استعفا داده است.بربنیاد گزارش‌ها، استعفاءنامه آقای ظریف به مسعود پزشکیان رسیده است اما در مورد تایید و یا رد آن از سوی رییس جمهور ایران، تصمیمی گرفته نشده است.رسانه‌ها در ایران استعفای معاون پزشکیان را مرتبط با استیضاح و سلب صلاحیت وزیر اقتصاد این کشور از مجلس شورای اسلامی دانسته‌اند.اما خود جواد ظریف، معادن استراتیژیک مسعود پزشکیان گفته که به درخواست رییس قوه قضاییه ایران استعفا داده است.این دومین بار است که جواد ظریف از آغاز ریاست جمهوری مسعود پزشکیان از مقامش استعفا می‌دهد.این در حالی است که پارلمان ایران روز گذشته وزیر اقتصاد این کشور را استیضاح کرده و بدلیل شرایط نامناسب اقتصادی در این کشور او را سلب صلاحیت کرد.

## افزایش ناامنی‌ها در پاکستان؛ بیش از ۱۰۰ تن کشته شده اند

رسانه‌های پاکستان به نقل از نهادهای تحقیقاتی این کشور گزارش داده‌اند که حملات ضد امنیتی و ناامنی در پاکستان افرایش یافته است.بربنیاد گزارش، موسسه مطالعات درگیری‌ها و ناامنی پاکستان ثبت ۷۹ حمله در جریان ماه گذشته میلادی (فبروری) و کشته شدن ۴۷ نیروی امنیتی پاکستان و ۵۵ غیرنظامی در آن را تایید کرده است. همچنان این موسسه گفته که در این رویدادها ۸۵ نیروی امنیتی پاکستان و ۴۵ غیرنظامی دیگر زخمی شده‌اند.در این گزارش همچنان از افزایش عملیات‌های اردوی پاکستان خبر داده شده است.

# ایران د افغان کارګرو د ګومارلو په تور ګڼې کارخونې تړلي

د ایران دولتي خبري اژانس راپور ورکړی، چې د بیګانه او غیر قانوني اتباعو د ګمارنې او د ګران پلورنې د مخنیوي په موخه د یو شمېر کارخونو پلټنه او تړل دوام لري.

د صدا و سیما اژانس د راپور له مخې، له دې سره د ایران حکومت په کرمان کې د افغان کارګرانو د ګمارنې په پار یو شمېر کارخونې تړلې هم دي.

یاده دې شي، ایران په تېر یوه کال کې شاوخوا یو میلیون افغان کډوال چې قانوني اسناد یې نه درلودل له خپلې خاورې اېستلي دي.

دا په داسې حال کې ده، چې یاد هېواد له دې وړاندې په دې هېواد کې د غیرقانوني کډوالو د اېستلو خبر ورکړی و.

# د کابل ـ اسلام اباد پر ټرانزیټي ستونزو بحث شوی

د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې لومړي مرستیال محمد یونس مومند، پاکستان ته په سفر کې د دغه هېواد د سوداګرۍ خونو د فدارسیون له رییس سره په کتنه کې، د سوداګریزو اړیکو د پراختیا او د ټرانزیټي ستونزو د حل په تړاو خبرې اترې کړې دي. مومند ویلي، چې د لارو تړل کېدل د دواړو هېوادونو سوداګریزو توکو ته اقتصادي زیان رسوي او دغه کار د نړیوالې سوداګرۍ له اصولو او ګاونډېتوب سره په ټکر کې بولي. د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې د خبرپاڼې پر بنسټ، یونس مومند د پاکستان د سوداګرۍ خونو فدراسیون له رییسه غوښتي، چې د دغې ستونزې د حل لپاره عملي ګامونه پورته کړي. په دې کتنه کې د پاکستان د سوداګرۍ خونو د فدراسیون رییس هم د ټرانزیټي ستونزو د حل په برخه کې د همکارۍ ډاډ ورکړی دی.

# د جلال اباد او مزارشریف ښاروالیو د همکارۍ تړون لاسلیک کړ

د جلال‌اباد او مزارشریف ښاروالیو ترمنځ د اړیکو د پیاوړتیا او دوه اړخیزو همکاریو هوکړه‌لیک لاسلیک شو. د مسئولینو په وینا، د دغه هوکړه‌لیک پرمټ به د دواړو ښاروالیو مسوولین له یو بل سره د ښاري پراختیا، ښاري نظم، ګڼې ګوڼې کمښت، ښاري ښکلا او دوه اړخیزو فرهنګي اړیکو پیاوړتیا په برخه کې طرحې شریکوي او د ستونزو د حل په برخه کې به ګډې همکارۍ کوي. ورته مهال د دواړو ښاروالیو د مشورتي بورډ مسوولین د دوه اړخیزو همکاریو په برخه کې دا ډول غونډې او هوکړه‌لیکونه ګټور یادوي او د دوام غوښتنه یې کوي.

# د سالنګونو لویه لاره د مسافرو پر مخ پرانیستې ده

دا چې د سالنګونو په شمول د هېواد په څو ولایتونو کې د واورې ورښت دی؛ نو بیا هم د سالنګونو لویه لار د مسافروړونکو موټرو پر مخ له دواړو خواو پرانیستې ساتل شوې ده.

د ټولګټو وزارت ویاند محمد اشرف حق‌شناس ویلي، چې یاده لویه لار د مسافر وړونکو موټرو پرمخ له دواړو خواو پرانیستې او باروړونکي موټر یوازې له شمال څخه د جنوب په لور تګ کولی شي.

یاده دې وي، چې نوموړې د سالنګونو په سیمه کې د واورې ورښت تر ۴۰ سانتي مترو پورې ښودلی دی.

# غزني کې د اوبو رسونې ۶ شبکې جوړېږي

د غزني ولایت د کلیو، بیارغونې او پراختیا ریاست مسئولین وایي، چې د دغه ولایت په څلورو ولسوالیو کې د اوبو رسولو د شپږو شبکو په جوړېدو سره د سیمې ۱۴۶۲ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرېږي. د یاد ولایت د کلیو، بیارغونې او پراختیا رییس محمد قاسم امیني ویلي، چې د دغه ولایت په ناوه، ګېلان، واغظ او مقر ولسوالیو کې د یونېسف موسسې په مالي ملاتړ د ۳۷ میلیونه ۹۰۰ زره افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د شپږو شبکو په جوړېدو سره د سیمې ۱۴۶۲ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرېږي.